



Roger Carlet Paris

د ښاغلی سردار محمد داود صدراعظم د پوره صحت موندلو پهٔ وجه د زړه له کومي
خوشحالي کوي او د دوی خدمتونه د هیواد د اقتصادي او کلتوري پرمخ تګونو
په لار کښي د هر ډول ستاینې وړ بولي .

و «عمرزی» اولونه

# پیغله

د زلماتاني راغلي دي پر چمن بو — لکه د «پیغلې» غوټۍ کاندي مسکېږونه

---

پښتو نخوا ښکلي ځلمي چه ځغلي هند ته — نو آغلیه د «پیغلې» کاندي انځورونه

(ښکار اندوی)

---

چه نجلیو به نڅا پسې کې خندل له — چه به د «پیغلو» کاڼان قطار قطار

(شیخ اسعد سوري)

---

نیک ونه، غوزالی دي که پېزوان دي — زمږ د «پیغلې» به پسرل کې د برمین بم برچار گل

(محمد امان)

---

اوی اوورته گل پغ د کې خوالگي خاندي — د چمن د «پیغلو» په زړه مسکیږونه

(مجروح)

---

بیاني وشکل له کم خوند ک جامونه — دا حسک پیغله چه نا شي له جنونه

(بېنوا)

---

د غرزوبر کوران د «پیغلو» روغ دي — که د ښکلو زرکو راغله کتارونه

---

دا نڅا د «پیغلو» نجونو پر مرغه ده ؟ — که کبلی بر سبزه زار وهي تو بو نه

---

امر سپوږمۍ یې هم له سکه سیل کاندي — ښېښنې د «پیغلې» چه کاندي انځونه

(حبیبي)

---

په خندا غوټۍ خوره شوه باغ ته ولاړه — په شان شان کوي د «پیغلو» مسکیږونه

(رښتین)

د کندهار د مجلې دوهمه گڼه

# کندهار

میاشتنی خپرونه

ادبی، تاریخی، اجتماعی، علمی

مسئول چلوونکی:- ا٬ م ٬ کرزی

اداره د هرات دروازه «د دولتی مطبعې څنګ ته»

بیه :- په کندهار کښې [۲۸] افغانۍ
په دننه مملکت کښې [۳۲] «
په دباندنیو مملکتو کښې [یو دالر]

د لمرنی ۱۳۴۰ کال د غویی [۱]
د میلادی ۱۹۶۱ کال د اپریل «۲۱»

د دوهم کال دوهمه گڼه
پر له پسې ۱۴ «

# د کندهار مجلی

## د مضامینو فهرست

# «د کندهار دویونکو سره»

تعامل داسې دی چې دمجلو او ورځپانو نوی چلو نکی د کار له شروع څخه د خپلې نشریې دخپرونو په موضوع کښې خپل هدف څرګندوی او دراتلونکې نشریاتو دپاره لار اولیکه ټاکی . لیکن زماسره څه خاص فکر موجود نشته بلکه زه به هغه لاروپالم کوم چه پخوا تر دې ښاغلی محمد ولی « ځلمی » او د کندهار دمجلې منور ادیبان اوقلمي ملګری پرهغه لار تللی دی .

دمجلې هدف څرګند اود خپرونو لار ئې روښانه ده څرنګه چه دمجلې عنوان « کند هار » تاکل شوېدی نو ځکه باید دامجله د کندهار د کلتور ترجمانی وکړی .

خو یوه خبره چه ننسبا د قومونو په نز د ډېر ارزښت لری هغه په خپله دقوم اقتصادی او فکری ارتقا ده . درسته ده چه ژبه باید وبالل شی او دتاریخ تیاره ازخونه روښانه شی لیکن که په قوم کښې د ذهن او د ماغ روښنائی موجوده نه وی ښائي چه دخپل ادب اوژبې څخه دی په زړه پورې استفاده ونه کړای شی .

موږ دتاریخی څېړنو په ترڅ کښې دداسې قومونو دژوند سره مخامخ شوی یو چه ژبه او

ادب ئې ډېر مترقي شوی وو خو کله چه دقوم ذهني معيار راکښته شوی او پــه راز ، راز اجتماعي بدبختيو اخته شوی دی نو بيا د خپل عالي ادب او کاملې ژبې سره دانحطاط و کندې ته لوېدلی دی او داهم ثابته خبره ده چه ژوندی قوم ژوندۍ ژبه پهوجود راوستلای شي او هم له هغه څخه استفاده کولای شي .

کمزوره ولس قومي شهرازه شلېدلی او پر دماغ ئې توره پيڅول خپرېدلی وي نو هغه هيڅ کله نه سالم فکر کولای شي او نه دواقعيت سره برابر تصوير تخليقولای شي .

روغ ادب هغه وخت منځ ته راتلای شي چه قوم روغ او فکر له موهوماتو څخه آزاد وي نوخود به زموږ سره دافکر وي چه د ادب او ژبې دخېړنو سره به دولس دذهني تنور په لار کښې هم زيار باسو .

پهدې کښې شك نشته چــه موږ به دخپل ارغوني کلتور درا ژوندي کېدو د پاره زيار باسو خوهو دزماني تقاضا هم هېر ولای نه شو زموږ سره به دانتقاد او نبصرې نظر موجود وي او د واقعيت پسندۍ پر لارې به درومو کومې ادبي خپرونې چه موږ دارتقا په لوري خوځولای شي يا په موږ کښې مترقي فکر تخليقولای شي هغه به موږ تــه گراني وي او موږ بــه زيار باسو چه د خپل هــېواد د اقتصــادي او اجتماعي نهضتونو دتجدد په لړ کښې دنوي فکر او نوي ادب هم خاوندان شو څو مو فکري او مدني حرکت متوازن وي .

او دراتلونکي نسل د پاره مو يوه روښانه او مثبته لار پرانيستلې وي .

په پای کښې د ښاغلي محمد ولي «ځلمي» دمجلې دپخواني چلوونکي هغه زحمتونه يادوم چه په يوه سر سره ئې سربېره پر اداري چارو اودورځپاڼې پر را ايستلو مياشتنۍ مجله هم خپره وله .

او د کندهار دملگرو ليکوالو څخه هيله کوم چه دمجلې په چلولو کښې ما يــوازې پرې نږدي په درناوي .

ا ، م کرزي



ښاغلی عبدالرحیم «هاتف»

# معاصري پښتو ته

## یو انتقادي نظر

ښاغلی د کندهار د مجلې چلوونکی!

فاضل «نومیالی» ډېره خصوصي لیك په ترخ کې زه دې ته رابللی یم چه د یوې مشخصې موضوع په شاوخوا کې خپل شخصي نظر ښکاره کم او که چیرې داڅو کرښې ستاسې د درنې مجلې له حوصلې څخه وتلې نه وي لطفاً به یې نشر کې.

که څه هم زه لیکوال نه یم او د دوستانو د قول په استناد زما د لیك ژبه درنه او گنگه ده، خو پښتو ما ته ایماني حیثیت لري او کله چه ددې ایمانیاتو څېړنه منځ ته راسي له خپله واکه سره سم پر هغه زغیده خپله فریضه گڼم، او ددې فرض ترك له نسم حاضریدای، پر دغه اساس له دې څخه چه د کندهار مجلې ژبنیو څیړنو او بلتنو ته هم مخ ور کړیدی غوارم چه خپله خوشالي ښکاره کم.

په هر صورت هغه موضوع چه ښاغلی «نومیالی» زه څیړنې ته رابللی یم د (شو-سو)، (کښې-کې) (احمدته - واحمدته) د املا گانو صحیح شکل دی چه زه غوارم تر لږ تفصیل وروسته خپل نظر پدې باره کې عرض کړم.

### ژبه د انکشاف په حال کې:-

له بده مرغه موږ هم د نورو په تعقیب د قدامت پسندۍ په وبائي مرض مصاب یو. هر شی زوړ خوښوو، زړه مځکه، زوړ آسمان، زاړه دوردونه زوړ تاریخ او زړه ژبه، ترموږ پخوا دې وبا نور هم ډیر ښکار کړیدی. خو زه چه وایم هر زوړ شی خوښول سربیره پردې چه د ډیری گټې تضمین نسي کولای کله کله د داسې موضوعاتو اثبات د تحقیق پر اوږدو هم خورا درانه پیټی حواله کوی چه د هغو ترڅنگولو په هر صورت دا ډېره ښاده چه دور ځني ژوند د انکشاف لاره هواره کړه سی.

زوړ تاریخ طبعاً د اقوامو پر نضج او رسیدلو دلالت کوی او د ؤلسونو ذوق او فهم څرگندوی او د ملت د توحید نظر په میدانو او قملي مفاخرو په احیا کې ښکاره رول لوبوی.

برخلاف ژبه د نورو اجتماعي موسسو په توگه

او تر هغه حکم لاندې راوړو کښتوب، ځواني، کمولت او اندراس نیروی تو هغه محترم ذوات چه د پښتو دخورا زړښتیا اثبات نه دی؛ کوی او دا نړو اسنادو په اتکا داوړدو پیړیو ادعا لري؛ آیا غواړي چه نورنو داځوانه او لږ ژوندوه د کمه ژبه دا اندراس منګلونه وسپاري؟ زما په ګمان کهٔ دیوی ژبي تاریخي مفاخر دهغې دا اندراس په بیه تمام سی، د کټې سودا به نه وی.

ښائي چه زما له دې نظریې سره دې علمي محافل موافق ناوي، خو زه دخپلې دغې مفکورې د اثبات لپاره صرف دغه یو دلیل وایم، چه د ژبې د قدامت سره دې ورو سره شلو کلو سوی لا تراوسه د چاو چا په قول ژبي ته د رسمیت صلاحیت نه دی ورکړی.

که چیری دغه ادعا صحت ولري نو زما خبره ټې چه د ژبې د راتلونکې انکشاف به منتظر کار کول د ژبې د تاریخ تر روښانولو د پر سود من بوام په تبع کې اثبات ته رسیږي. او زه داده یم چه زما پیشنهادی شکل د پر ان ډیوالان او همکاران راجلبولای سي.

په هر صورت وموږ بل چه ژبه د ژوندۍ ذراتو او نورو بشري موسساتو په ډول د خپل طبیعي انکشافي سیر نه دوام ورکوي، نو که چیري د انسان لاس دې انکشاف توقیف ته وراوږد سي امکان لري چه موقتي اغیزه دې وکي له بلې خوا که د ژبې د سیر په تسریع کې بیځایه ګوتې ووهل سي

تو دبدو نتائجو تر قیب به بې مورده نه وي. بلکه بې ځای مداخله چه واقعاً د ژبې دوړاندې تګ منازل اندولای سي.

## د ژبې د طبیعي انکشاف حکمیت :-

څو کرښې وړاندې مې عرض وکې چه ژبه د نورو انساني موسسو په تو که خپل انکشافي سیر ته په پوره ادامه ورکوي. خو ژبه یوازې دهغې تولنې انحصاري مال نه دی چه په هغه کې لفظي اوبې کوي بلکه اساساً ژبه د تول ولس چه په هغه ګړیږي مشترك او مشاع مال دی او ژبني تصرفات که د تول ولس له خوا نه وی او اقلاً هغه تصرفات ځای نیسي چه ولس ئې ومنلای سي او تولی هغه لاس وهني چه ولس قبول بیدا نه کې د کاغذ او قلم تر منځ دا سرارو حیثیت مومي چه تر عامي محاوري او عامیانه ژبې (چه حقیقي ژبه ده) پوری نه رسیږي، زما په ګمان د ژبې حقیقي بڼه په عامیانه کلام کې څرګندیږي او دیوې ژبې دقوت او ضعف دلیل پر مستبعد ادب په پنډوادبي ذخیرو کې نه بلکه ولسي اشتقاق د تصریف په دوران کې باید ولټول سي.

نو که اوس څولکه زیاتوو باسي چه متروك اشتقاقات بیا ولسي دوران ته را اچوي بیځایه خپل نوم باسي او دا کوشش تر محدودې ادبي ساحې وړاندې ګام نسي ایښوولای.

تردې مختصرې مقدمې وروسته بیا هم ښاغلی

ولو نکی ممکن زما د نظر ئې په تعقیب کې ډېر
مشکلات وته اری .

## د پښتو ټولنې تصویبونه او محاوروې ژبه :-

پښتو ټولنه چه د پښتو اکېډمي حیثیت اری او د علمي محافلو په نظر کې ئې احترام محقق دی د پښتو د رسم الخط په باره کې ئې له پخوا څخه د قدر وړ تصویبونه کړي دي چه لیکوالو د هغو رعایت په خپله اندازه منلی دی ، خو څرنګه چه وروسته دا تصویبونه او قرار دادونه صرف د رسم الخط د توحید په باره کې دي او جنبه ئې هم توصیوي ده ؛ څه خاصی حکم نامې نه دي چه د صحت و خطا معیار وګرځېدای سي نو له هغو تصویباتو څخه د (شو-او سو) په باب کې دي چه (شو) ته ئې په لیکلو کښې تر (سو) ترجیح ور کړې ده د ترجیح وجه ئې ما ته په یقیني صورت نه ده ښکاره که چیری د (سو) څخه انصراف د هغه التباس د معنی په وجه وي چه له (سول) (او ژاخیستل) سره ئې امکان سته نو دا پر امکاناتو قسم اخیستل خو څه اصولي کار نه دی او په طبیعي جریان کې د التباس قطعاً د شذوذ حکم اری ، که څوک اوس په لاس یو داسې مثال وسکښي چه التباس ئې مقتضی سي نو دا بیا د فقهي د هغو بعیدو فرضیو شکل اخلي چه تاوان ئې تر ګټې ډېر دی او نتیجه ئې د وخت ضیاع ده (شو او سو) دواړه په ژبه کې علی السویه متداول اری او په خپله په ژبه کې د یو څه رجحان

وجه پر یل نشته او زما په نظر کې هم داسې شی نه راځي چه د یوه لپاره بل باید و غورځول سي ، نو زه کم داسې بیننه لرم چه د هغې پر اساس کم یو غلط او هابل صحیح و بللای سم .

## کښې - کې :-

په دې دو شکلو کښې هم لمړی شکل د پښتو ټولنې مصوب شکل دی . خو زه په خپله له دې شکله سره یوره موافقه نه لرم او پر هغه اساس چه په ژبه کې حکمیت صرف عامې محاوري ته سپارم ، پر دې مې زړه هم ډېر نه ښېږدی چه (کښې) غلط و بولم ځکه چه له ډېرو پښتنو سره چه مختلفې لهجې وائي مخامخ سوی یم خو (کښې) مې تر نه لفظ مې یا اورېدلی نه دی یا که چیری غوږ ته راغلی هم وي دو نه لږ ئې بولم چه اوس مې حافظه د هغه اعادې ته حاضر یدلای نسي نو د اختصار او تداول په حکم دوهم شکل ډېر صحیح ګڼم .

## احمد ته و احمد ته :-

په پښتو کې بعضی مجرورات دوه د جر توری اخلي یعنی بعضی مجرورات د سابق او لاحق جری حروفو په منځ کې راځي لکه :- په - کور - کې له - کوره - څخه ، د - احمد - سره ، و - احمد ته په څلورو مثالو کې تاسې وینئ چه مجرور د خپلو جری تورو په منځ کې راغلی وي . خو د پښتو په مختلفو محاورو او لهجو کې متفاوت استعمال اري .

مثلاً د کندهار دخوا پښتانه کله کله د اومړي جر په اسقاط د جري ترکيب تلفظ کوي مثلا احمد مې پټې کې وايد - پټې تـه راغلم ، احمد سره مې وکـتل - احمد ته مې وويل .

په کندهار کې عموماً پورته جري توري ځيل مجبورات له دو خوا وُ څخه پـه غيږ نيسي که څه هم ديوه په استناد بل شکل غلط نه و بللای خو دلته بيا هم زما پـه نظر يوه د يادولو وړ خبره سته او هغه دا چه په و - ته - کي زما په گمان مرتقي او انکشافي شکل د اومړي جر اسقاط دی ، او دا پر خو فرضيو او تخمينانو بنا بولم بدي شکل :

زموږ په ژبه کې د پر دجر توري سته خو جري ترکيبونه هر و مرو په دوه جره نه جوړ يږي ځينې ترکيبونه بوازي د جر توري اخلي او ځينې نور بيا د پورته مثالو په تو کـه دوُو تورو ته ضرورت پيدا کوي ، کـه چيري په دغسې موارد و کې قياس ته اجازه وي نو زه غوا ړم چه دا سې استنتاج وکړم چه جري ترکيبونه چه په دوُ جري تورو جوړ يږي موږ ته دژبې پخوانی شکل راښيئي چه تر ډيري اندازي په کـندهار کې خوندي پاته دی . خو اوسني عام تمايل دي ته ډيري چه جري ترکيب په (و - ته) کې پر بوازي (ته) جوړ سي او پر دی شي لرو بره پښتو پورنگه د سابق جر اسقاط ته مايله ښکاري .

قديم متون کـه څه هم دعامي محاوري په سر اهميت نه لري - هم د سابق جر په اسقاط شاهدي ور کوي لکه محمد هوتك چه د پټې خزانې په فاتحه کې ليکي (حمد و ثناد هغه خدای ته چه انسان ئې په ژبه او بيان لوړ کا (يوه کرښه وروسته بيا ليکي (سقا يـنه او سپاس دي هغه خاوندا ره) چه دلته (ار ه) د (ته) په عوض کې راغلي دی ، بل ځای په (۱۱۳) مخ کې ليکي (بادشاه لم بنا ه ژړ زعفراني شال ور کا او په دغه مجلس ئې تو لو حاضرينو ته شالونه و ښندل) لکه چه وينئ علاوه د (و) پر اسقاط دلته (کې) هم نه ليدل کيږي .

او دغه ديوه جر اسقاط - (کـله سابق ، کله لاحق) په بعضو موارد و کې داباحت حکم لري لکه د تر - پوري ، د پر - باندي ، چه په دې مثالو کې دوهم جر کله اوښتی کله و بل کيږي هيڅ دغه حيثيت دی د و - ته سابق جرد پر ځاله او پنا څخه و رمحول کيږي ، له بله پلوه په ليکنو کې کله کله ديوه جر په جري ترکيب کې د مطلب افاده روښانه نه راځي - نو کله چه د مطلب ايضاح دا ايجاب کې چه په دوه توري دي دا ترکيب وليکل سي هلته خو څه دويلو ځای نه پاتې کيږي ، که نه نو زما د هغه اصل له رويه چه په ژبه کې حکميت دعام تمايل او عامي محاوري په لاس کې بولم مرجح شکل دغه راز ښکاري چه د و - ته پر ځای دا ترکيبونه بوازي په د ته وليکل شي .

زما دد غو کرښو مطلب په يوه جمله کې دغه دی چه محاوره بايد درسم الخط تر توحيد جار نسې خصوصا په هغو ځايو کې چه مطلب هم خلل نه اخلی .

دا ؤُ و چه د ښاغلي تو ميالي په غوښتنه مې دا څو کرښې وليکلې په داسې حال کې چه اوس هم نه پوهيږم چه د دوی د مطلب ترديد به مې کړی وی که تائيد خو که ژوندوُ او داسې مطالب سته سی د موقري مجلې په حوصله کې وه بيا به هم کتون کوم .

# د کندهار د بیلتون کوکاری

شاغلی (ویران)

دامی زړه نه نه لوېږي چه دهیواد دوستی احساسات دي په چا کی نه وی ، پداسی حال کی چه مرغان او نور حیوانان هم ځنی خلاص نه دی دا ولی ؟

اجتماعی پوهان خو وائي چه دا اجتماع او ټولنی مرکز وطن وی هلته د سړی خپلوان او دژوند کران ملګری اوسی او ټولنه چه د ژوندون بنیاد دی په هیواد کی جوړېږي ځکه نو دهیواد کرانښت په انسان کی طبیعی سوی دی .

دا خبره سړی هغه وخت ښه حس ولای سی چه څو ورځی دهیواد څخه بهر کی تېرا می کړی ، په بیګانه هیواد کی چه هر څه په نعمتو کی سړی غرق وی خو دوطن خاوره ، دوستان او نور هر څه ئې وسترګو نه ځیک ولاړ او زړه ئې په بندوی لکه پیاوړی شاعر خوشال خان چه وائي :-

چه سړی او په دغره نسته په هند کی
ترې نو به کـه واړه ډک وی له نعیمه
خدایه زړه می په وصال دهغو خوش کړی
دا چه اوس ورځنی لیری دی دوه نیمه
همیشه به په هند نه اوسی ( خوشال ه )
عاقبت به عاصی وزی له جحیمه

یا لکه زمونږ بل پښتون شاعر خواجه رزق الله چه وائي :-

خوار غریب او بی نوا وای
خو وطنه ستا په خوا وای
هیشته خوش یم په وطن کی
نه چه هند وا ره زمیا وای
خو ژوندی یمه تر مر که
هم ها غـه آب وهوا وای

یا لکه پښتون شهنشاه لوی احمد شاه بابا چه وائي :-

دزړه قـرار می له جدائي
اورمی ورک ته سی داشنائي
چه پر وطن وی زړه څه قراروی
یم بی طاقـته له پردیسی

نو زه هم دپرو دهیواد د بیلتون کوکاری وهلی او خپل ګران هیواد ئې په ډېر ارمان یاد کړی دی لکه دالاندی پښتانه پردیسان چه د کندهار څخه لیری سوي دی او همدغـه خپل کندهار یادوي :

۱- فتح خان بریځی چه ژوندون ئې د ۹۰۰ ه کال په شا وخوا کی اټکل کېدای سی کله

چه پههند کی دی کندهار داسی یادوی :
کهٔ باخه دی کندهار انار پاخهدی

اسلم خان بابادی خوری پرمانرخهٔدی

۲- عبدالرحیم هوتك :- پهٔ ۱۱۵۰ کال کی کله چه نادر افشار کندهار خراب کی د هیواده ووت او بخارا تهٔ ولاړ هلتهٔده د کندهار دبیلتون کوکاری داسی کړیدی :-

زهٔ رحیم پهٔ بخارا کی ارزو کړم
کهٔ می خدای کړی پربلاده کندهار کی

یا داچهٔ :-

بخارا اوسمر قندمی زړه زخمی کړ
غواړم پاڅم په زیارت د کند هار

یا داچه :-

ښایسته کندهار ډېر دېر یادومهٔ
نهٔ هیرېږی کهٔ هرڅونې هیرومهٔ

خصوصاً دارغنداو او باغ ولو نه
زړهٔ می غورځی بې طاقته سم اندرمه

سرپوزهٔ او کاغانك چهٔ پهٔ زړهٔ راسی
اورمی واخلی پرځان بیك وښوورومه

کوکران او کندیګان دخدای پهٔ حکم
څهٔ فیضونهٔ باندی اوری کی شمیرمه

یودم کښېنهٔ پهٔ ایوان دچل زینو کښی
تماشاو کړه چهٔ زړهٔ دی سی بې غمهٔ

ماهم یاد کړه کهٔ دی خدای کړی برخه او پهٔ
چهٔ غریب پهٔ بخارا کی یم له غمه

۳- خدایداد (جدید) دشاه‌محمود سدوزی پهٔ پاچهی کی ژوندی ؤ پهٔ ۱۲٤۷ ق کال ئې هرات

تهٔ سفر کړېدی ارهوري پسی یا تهٔ سوی دی دی سرې د کندهار دلیری والی ناری داسی وهلی دی .

نهٔ بوی نهٔ پیداسی کندهار غوندی ولات
اوس ارمان می دی یارانو هیرپی نکړم پهٔ حیات

یا دا چه :-

اوس ارمان می کندهار دی
کندهار نه دی ګلزار دی

٤- شیر محمد د ۱۳۰۰ کال پهٔ شاوخوا کی ئې ژوند تخمینولای سوداسړی له کندهاره تللی دی او کندهار داسی یادوی .

ان می بیا پهٔ نیت نیولی کندهار دی
لهٔ هرانهٔ می خراب زړهٔ تار په تار دی

پهٔ دیدن می دیارانو سرهٔ و کړی
دغهٔ خواست می خدایه تا تهٔ پهٔ ژړا دی

دیارانو پهٔ دیدن می خوا سړه کړې
زما ورځ دامی خواست ایل و نهار دی

۵- شمس الدین کاکړ د کلچابات هم پهٔ هندوستان کی پهٔ خپل وطن (کندهار) پسی ناری او کوکاری وهلی دی کهٔ څهٔ هم داسړی دمخهٔ ترهغه چهٔ د کندهاره ووزی د کندهار څخه شکایت اری لکه داچهٔ :-

ان خپل زړهٔ راته ویل کندهار پرېږده
دغزان له ظلمهٔ جورهٔ ګلزار پرېږده

نو خدای (ج) خبر چهٔ شمس الدین ته به څهٔ مصیبت پیښ ؤ خو دا ئې یوه قاعده ده چهٔ فکر موقبض سی نو هرڅهٔ غندو ښائی چهٔ شمس الدین ته هم یوه واقعه پېښه وه چهٔ کندهار پرېږدی، خو کله چهٔ دهغه کندهار بیلتون وینی بیا ناری وهی .

مدام ژړا کړم پهٔ ناری ناری
یارمی یادیږی وهم کوکاری

دهند ځنګلی راته قفس سوی
ورکی له ماسوی دوطن لاری

یاداچه :-

پرانې می خوب لیدی چهٔ مخ پر کور ځم
پهٔ هوس لکه بلبل دباغ پر اور ځم

ښاغلی محمد حسین (طالب) کندهاری

# «د نیکه زغ»

زمې ولاړې شپه شوه تیره لوی سحار شو    وخت د عیش ؤ عشرت راغی نو بهار شو
بوستان موج رهی د ګل، باغ نو ل ګلزار شو    د بلبلو به چمن کښې چو نهار شو

چه بارانو وخت د ګل دی په بهار دی

د هجران شپه شوله تیره نن مو وار دی

سحر ګاه وه نسیم راغی شیدا ئې شوم    دیار بوی را باندې ونښت سو دائي شوم
د بلبل په څیر په غم د جدا ئې شوم    مخ می ونیو وصحرا ته صحرائي شوم

په ژړا او په افسوس لکه مجنون

هری خوا ته ګرزیدم په زړه زبون

د بیلتون غم می په زړه باندې چاپیر شو    ئې زړه می په غمو د جانان زیر شو
د دلدار د فراق غم را باندې ډیر شو    نو بهار ؤ باغ ؤ ګل می تو له هیر شو

نو می مخ کړ د نیکه د قبر وخوا ته

په ژړا می شروع وکړه دي وینا ته

نیکه جانه! د جانان غمو خراب کړم    نیکه جانه! د هجران لمبو کباب کړم
رقیبانو په بیغور ډېر په عذاب کړم    روبباری د بهګا نه خلګو نراب کړم

پدې فکر کښې خوار په زړه افګار یو

چه دا یا نه ولی دا سی له اغیار یو ؟

عاشقان د نر قیس د خپل وطن یو    پر وطن باندې موږ تیر ترسر ؤ تن یو
پښتانه یو، غیرتمن، ستاسی زامن یو    پر دا خپله خرا به میینه! مین یو

څه به ګړ و چه دا دریاب ر انه ساحل سی

د اور نیا د محبوب وصل را حاصل سی

ایکه زغ دحال په ژبه کړه له کوره　　چه ښتو نه اي زما د ستر کو نوره
که دعیش پیمانه، نه غوا ړی نسکوره　　زموږ اعمال دځان سر مشق که ناریخ گوره

چه تر کومی اندازی مو قدر ؤ شان ؤ
په غیرت او شجاعت مو نوم نښان ؤ

دافغان نوم په تمام جهان کښی خپور ؤ　　و دښمن ته معلوم شوی زموږ زور ؤ
فتوحات مو له ایران تر لاهور ؤ　　بخارا مو په اختیار لکه خپل ورور ؤ

ور کول مو پر وطن با ندی سرونه
په غیرت مو لاندی کړی وه ملکونه

چه تاره به مو د ننگ افغانی کړه　　یا د جنگ پر میدان موږ پهلوانی کړه
سر ؤ مال به مو تر مینی قربانی کړه　　پر دښمن به مو ترخه زندگانی کړه

پد غه صورت مو ساتلی وطن خپل
او به کړی مو په وینو دی گلشن خپل

اوس وتلا سو ته زا منو انتظار یو　　منتظر د ترقی د دی کوهسار یو
په قبرو کښی د وطن په غم افگار یو　　که همت و کړی نو ستاسی منت بار یو

گوندی داخرابه خونه مو گلشن سی
کارخانی پکښی بناد علم ؤ فن سی

نه مو تر اری دځان نه مو ژبیلین شته　　نه مو ریل شته نه مو توپ ذهږ ده پن شته
نه بالون شته نه بایسکل نه بالازن شته　　کار اوراق دی نه دوسیه نه کارتن شته

دالا پر بېږدی چه تار نه اری عسکن نه شته
دخپل لاس مو کالی نه شته کفن نه شته

با غیرت زامنو! لږ څه غیرت و کړی　　بو ؤ بل ته په اخلاص نصیحت و کړی
دوطن په ودانی کښی زحمت و کړی　　غیرت و کړی غیرت و کړی همت و کړی

داوطن مو هم زانگو هم کور هم گور دی
که خراب سی پا برهم څو مره پیغور دی

د نور په ۲۱ صفحه کښی

له چینی خپره وتو څخه:

پښتو کوونکی: (باڅوال)

# چینی ادب

## د تاریاکو له جنګ څخه بیا د می د څلرمی تر پیښې پورې

د ۱۸۴۰ م کال د تاریاکو د جنګ او د ۱۹۱۹ م کال د (می) د څلرمی نیټې د پیښې تر منځ کلونه د چینی کلاسیکی ادب په تاریخ کښې شپږمه او وروستنۍ مرحله جوړه وی.

د چینګ د سلسلې پر وروستنیو نیمایی کښې د غرب سرمایه دارو هیوادو پر چین باندې اقتصادی او لښکری پرله پسې حملې شروع کړې دغسې نو د چین فیودالی اجتماع کومه چه په ډېرو پیړیو کښې ثابته پاتې شوې وه، خرابه شوه او چین نیم فیودال او نیم مستعمره هیواد و ګرځیدی. د غه وخت ځ چه طبقی په مناسباتو کښې تحولات پیښ شوه.

په دغه تراسه وخت کښې چینیانو بدې بسې وه چه د تجاوز او استبداد په مقابل کښې وجنګیږی.

د تاریاکو په جنګ پسې د ۱۸۵۱ – ۱۸۶۴ کلو په منځ کښې د تایپینګ انقلاب پیښ شو او په ۱۸۹۸ کښې رفورمیشن (اصلاح) و منځ ته راغی، بیا نو په ۱۸۸۹–۱۹۰۱ کلو کښې د استعمار مخالفین راپورته کیږی او په ۱۹۱۱ کښې انقلاب صورت نیسی چه لوی ترین شورش ئې بللای شو. دغه رنګه نو تر اتیاو کالو وروسته د (می) د څلرمی پیښه و منځ ته راغـله، چه چینیانو د د بهو کراسه لپاره په خپلو شعرو کښې اصرار او ټینګار وکړ. مګر دوی د چینی بورژوازی د کمزورتیا او کار کوونکی دلی د مشرتیا د نه والی مدیون دی، بدی کښې چه د دوی د هدف په لاس ته راوستلو کښې ناکامه شوه.

د دغې دوری خورا ښه لیکوال بیله استثنا څخه ټول د ملیت پر اساس باندې - زده شوی وه. په دغې اتیا کلنی مرحلی کښې لوی شاعران عبارت له: چانګ دي، چینګ وی یوان چوچی او هوانګ، شی هسین څخه وه. لومړنیو درو د تاریاکو د لمړی جنګ په شا او خوا کښې حقایق ضبط کړه، او د حکومت بې زړه توب، بیده والی او د ولس بیداری او جرئت ئې ښکاره کړ. د چانګ وی یېنګ د (سان-یوان لی) غوندې نظمونه او

دوی یوان «د تاریخ رابلنه» او د چوچی «معاصر واقعات» واره سرتر پایه پوری پر حقیقت باندی بنا وه هوانګ څون هسین یو مهم لیبرال ؤ او آرزو ئې درلوده چه به «شعر کښی انقلاب» پیښ کړی څو هغه ؤ چه یو نوی مکتب ئې پکښی راوایستی. د هغه وخت د «نوو» اشعارو څخه ئې ډېر سطحی وه او د هیوانګ آثار تراوسه پوری د وطن پر ستنیه د حس په نسبت ثابت او ژوندی پاته سوی دی چه د خپل وخت له سیاسی او اجتماعی حقایقو سره نژدې اړه لري. د نوموړی ژبه غنی او طبیعی ده.

ده د «سالندی ویو انګی بیابانګ» نظم چه د ۱۸۹م کال د کور یا د بیابانګ مدافعه تېتوی او د هغو جنرالانو کومو چه چین د توانګر بیه تر خه غندنه کوی داسی:

له شپږ زد برشو مورچو څخه خوراښه مورچه ځغله. آسو چیت کړه تر پښولاندی؛ خلک یو پر بل اوید له یو جنرال ئې ځینی مړ سو، بل ئې ګیر کړه سو بندی. نور پنځلس زرو خلکو وسلی کښېښوی وی تندي (۱) «تیښګکو» او «تابوان» هم په شعرو نه وه چه د هغه وخت له «پسیدو» کلاسیکی شعره سره خوازه او قوی مقایسه کړه سویدی.

په نثر کښی اوی لیبرال لین څی هسو، چانګ بینګ لین او لیانګ چی چاو وه. لین څی هسو د کانتون هېرو کمشنر ؤ. هغه چه د تاریاکو له راوړ نګه سره ئې مخالفت وکړ او یوزدورو او غیره تا که نثر ئې په سیاسی موضوعاتو کښی ولیکل، چه د انګلند په مملکی ته د ده دغه یادداشت پر هغو سختو جزاؤ باندی مشتمل ؤ کوم چه د خارجی قاچاقچیانو له پاره ټاکلی سوی وی. د چانګ بینګ، لین ئی سبک ډېر علمی دی او دی پخپله یو غیر تنفند انقلابی سړی ؤ کوم چه په خورا صراحت سره ئې د شوروښ تقاضا کوله د دمانچوس په وسیله سره د چین د تنندی توب (اطاعت) په ۲۴۰ نمة کالیزه کښی په خپله اعلامیه کښی داسی ولیکل:

(که څه هم یونان ونیول سو، مګر تلافی ئې وکړه: که څه هم پولینډ تاشی په تاش سو مګر خلکو ئې خپلی اجتماعی تولنی بیرته جوړی کړي. ولی په تو چین زموږ لوی هیواد له خپله ډیره نفوسه او پښه کلتوری اصولو سره، ود غو کو چنیو ایالاتو ته خپله نیغوالی په اثبات ورسوی؟ پریږدی چه پلرونه او زامن غونډه سره وکړی او تو له یولاس سی، پریږدی چه موږ خپلی اوښکی پاکی کړو او دغی تولنی ته راحاضر سو څو د خپلی آزادی له پاره ملو څخه یادونه وکړو.)

لیانګ چی چاو د نثر د یوه نوی سبک حمایه وکړه په کوم کښی چه د سادګی او روانی ښېګڼی سته، دغه سبک روښانه مګر د اصولو پابنده نه دی. کلمه ئې محاوری یا د

(۱) تنندی معنی مطیع او فرمانبر داره.

جملو هغه سا ختمانو نه کوم چه له پردیو ژبو څخه په عـاریت اخستل سوی وه . استعمال کړېدی .

ددی له باره چه واضحه او څرګنده سوی ، دغه دلوستونکی وقناعت ته یو مرنره آله وه له دغه یلوه څخه نو دلیانک چاچاو لیکـنی د چـینـک د سلسلی په بای او دجمهوریت په شروع کښی دیری رواـی سوي .

ددغي مرحلی هغه بیځی نامتو ناول لیکونکی عبارت وه له : شیه یو ، کن ، لیوو ، هانک یانک ، چینـک لی باو چیاوو ؤ باو ، او څنیك یو څخه دلی باو ، چیا دوه مهم اثرونه عبارت له : «اوسنی وختی» او «بیوریو کراتیان» څخه ، دی ، ده د خارجی مغرورو مبلغینو اوچینی صاحب منصبانو هغه چه بیرندو کی باتـکان وه ، لهمخو څخه ددوی مخبوتی ورځیری (ووؤ یاو) دیر ناولونه اری چه خورا مشهوره ئي «د ورستنیو شلو کالو عجیبی پیښی دی» . دغه نه یوازی پر بیوریو کراتیانو باندی حمله کوی ، بلکه سوداگر او پوهان هم نرحملی لاندی نیسی ، چه د خو ناکلو کلتوری پوهانو بی حسی خورا په خوند سره بیا نوی شیفنگپود «یو گل گـلاب د سین په سیند کښی» په واسطه سره دیر مشهور سو چه دغه د یوی مشهوری فاحشی (زرین گل گلاب) په شار خوا کښی ؤ کوم چه دچینـک د سلسلی په آخره کښی ئي د تولنی له مختلفو اړخو سره تماس کړی او دهغه وخت فاسد سیاست او صلاحیت داره بیوریو کراسی راښکاره کوی ، یو بل ځای مو داسی ذکر کړی وه چه دبیـکنـک یو خوار مأمور هغه چه خپل پور وته ئي لا نه سوای آدا کولای خو بیا هغه دی چه دامیرانو مرسته حاصلوی او بیا ئي ځینی جوړیږی مگر بل ځای مو داسی راوړی دی چه دی دفراسی په مقابل کښی دچینی اشـکراو بحریی رهنمایی له باره ولیږل سو ولی هر څه ئي سره ولړل .

«ده نه خپل منصبداران پیژندل او نه په خپلو سړیو بسی بابسته ؤ ، خو ورځ په ورځ متـکبر کیدیء ده تو له قدرت دخپل ځان له پاره غوښتی ، او څه لیاقت چه ئي درلودی هغه وارونه دچم او خمؤ فرانسوی قوماندان دی هیڅـکله خوشی نه پریښاوه ، مگر په هغه ترڅ کښی چه محافظینو پـه ئي د طوفان په حال کښی دده پر شاؤخوا باندی بمباری شروع کړه . که څه هم چاوانـک په پرخپلو مغزو باندی داسی فشار راوستی ، لکه څرنـگه چه له خپله قلمه سره وی ، خو د توپ په مقابل کښی ئي هیڅ نه سوای کولای ، لکه څرنگه چه دی په خوله کښی تیار ؤ دغسی هم د دښمن د بحریی په مقابل کښی بی مقاومته ؤ ځکه نو دی په شر بغدره باران کښی اخی بښی و تښتیدیء او اوه یا اته میله په ځغستا ولاړی څو خپل ځان ئي په یوه ماجیت کښی پټ کړی ، بیله دی چه دهغو نولو کښتیو او خلـکو ، هغه چه ده له لاسه ورکول ؛ په باره کښی فکرو کړی . »

دغه ناول که څه هم وبای

ته نه ؤ رسیدلی خو د خپل وخت پوه د پر بښهٔ درجه اخلی.

خارجی ناول ته د دغی مدی په ترځ کښی (لین شو وونا و) او نورو برخه اخیستی نو ځکه له خارجی ژبو څخه د چینی افسانی د پرمختګ او نورو هیوادو څخه د چینا پاتو د پوهیدنی له پاره په چینایی ترجمه کړیدی.

کله چه دغی کلاسیکی درامی لکه د ځاڅو او چوان چی هغه چه بی رونقه سوی، نو ئې پر ځای پاندی محلی او پراوو تکامل ومو ندیء او وو لسی سوې. پدغو کښی پخوانی خورانښی او پرا وی لکه «د ماهیگیر انتقام» او «د پیـور ګاټی» او داسی نوری چلیدې. په نورو مختلفو ځایو کښی پوشمیز خو ندوری درامی، چه اکثراً په دا انقلاب پادروانو ودانیو په انتقادی روح کښلی سوی وې، ومیدان ته راووتلی. د ۱۸۹۸ در یفو رمېشن په دوران کښی وانګ هیساو نو نګ په تاریخی توګه سره څو او پراوی ولیکلی چه وطن پرستی ئې ترزیق کوله. لکه څرنګه چه ئې دی «د نیکه پر زیارت ماندیء» په او پرا کښی بیا نوی، کله چه د (شو) پاچا فیصله وکړه چه په ۲۶۳۸ میلادی کښی و (وی) ته تسلیم سی مګر د دغه زوی لیو شین چه دغه لا ندنی پروتیسټ صادر کړ، نو ئې خپل ځان هم ووژه:

په فوزو کښی می داسی دربار ی دی لکه پلار چامی وجنرال تینګک ته ور نژدې کیږی.

زه دد غی صحنې لید هیڅ نسم زغملای،
چه پو پاچادی د خپل آس په مخ کښی سرتیټ وی.
زه به وکولای سم چه تو له خا ننان مړه کم!
ان ورځ زموږ د امپراتوری دربار خا ته هه ومی.
زه خپله توره په توندی سره کشږم،
او مرګ ته ترپی ننګی تر جبح ورکوم،

اوسنی او پراوی پـه معاصرو نوموسره د چینی تیاتر پوه همه برخه کړ ځیدلی ده او په سیاسی اړودونو کښی ئې فعاله رول بازی کړیدی پدغه وخت کښی هم دوی د زمانې وسیاسی ضرور یاتو ته جواب ور کوو نکی وه، او عصری درامی چه غربی سبک ئې درلودی سو که سو که ښکاره سوې.

د ۱۹۱۱ په انقلاب کښی دېری تمثیلی کمپنی موجودی وې چه له هغی جملې څخه: د ملګرو ټولنه د بسرای امر ټولنه، د بسرای ولې ټولنه او تکاملی ټولنهٔ، ئې هغه دی چه خپله برخه ئې د چینی تیاتر په پښېرولو کښی سرته رسولی ده هغه درامې چه دوی را ایستلی وې د انقلاب له پاره ئې وواسی غوښتنه په خپل اصلی و سمت سره منعکسه کړه.

د پېو کراتیک انقلاب د وخت ادب هم د نوی بورژواز ثقافت او د زړی فیودالی ذهنی تر منځ شخړهٔ منعکسه کړه. مګر له هغه وخته څخه چه ترپه داستعـار و ذوری ته ور کښېوتلی ده، نو د ځوان چین سرمایه داری طبقې و نه کولای سوای چه دغه زورور جنګک دی خاموشه کړی! دغه رنګه نو د دغی دورې بورژوازو (سرمایه دارو) مفکر نیو د اصلاح (ریفور میزم) وخوانهٔ پو اغیزه ناکه تمایل څرګند کړ مګر و دغو لیکوا لو ته پو ره بری په لاس نه ورغی.

دغه نه تر هغه وخته پوری چه نوی دیمو کراتیک انقلاب شروع سوی ؤ پلکه د (می) د څلرمی تر پېښې وروسته په چینی ادب کښی پوښکاره او تمیز کیدو نکی پرمختګ ومنځ ته راغی.

د کلچر اینډ لایف څخه

د ښاغلي (آشنا) ژباړه

# سیارات دوې ډلې دي

شمت د سیارانو د تشکیل په فرضیه کې داهم زیاته وي چه سیارات د کمیت او کیمیاوي ترکیب په لحاظ متفاوت او دوې ډلې دي، چه یوه ډله د بلې څخه د ذکر شوو خصوصیاتو په سبب توپیر لري.

هغه څلور سیارې چه تر نورو سیارانو لمر ته نژدې دي لکه (عطارد، زهره، مځکه، مریخ) نسبتاً کوچنۍ دي او تر ټولو لوی سیاره ئې مځکه ده، چه متوسط کثافت ئې له ٤ څخه تر ٥٫٥ واره پورې نسبت وار بوتل دی دغه سیارات تر اوله د مځکې غوندې درندو او فلزي موادو څخه جوړ شوي دي.

هغه ډله سیارات چه نسبت و دغو ته د لمر څخه لیرې دي لکه (مشتري زحل، اورانوس او نپتون) تر مځکې لس پنځلس واره جسیم دي، د دغو کثافت ښکاره کوي چه دغه سیارات د پیخې سپکو شیانو څخه جوړ شوي دي. د دقیقو مشاهداتو څخه موږ پوهیږو چه دغه سیارات د میتین او امونیا ډیر مقدار لري. ځینې نظریات ښکاره کوي چه دغه سیارات یو مزیاته اندازه د غیر وزین عنصر لري چه هغه عبارت د هایدروجن څخه دی.

ښائي چه د مشتري او زحل د سیارانو د حجم ۳-٤ برخه هایدروجن وي ځکه نو دا پوښتنه منځ ته راځي چه د دغو دوو ډلو سیارانو د دغه توپیر مبدا څه شی ده؟ ودې پوښتنې ته په کال ۱۹۵۰ کې د شوروي اتحاد د سیانس د ټولنو پروفیسرانو A.L. hébedinSKy او GurevichL.É. داسې جواب ورکړ:-

دغه پروتوپلنیټري اوریځ (چه د مځکې د مبدا په برخې کې توضیح شوه) د گرز د لراو په سبب صرف لږ شفافه وه او کله چه گرز د یوه مسطح ډسک په شکل سره ټول سو نو دغه آخر الذکر گرده غیر شفافه سوه د لمر وړانگو یوازې د دغه پلیټ د منځ محدودې برخې ته رسیدلای سوای، غیر له دغو برخو څخه نورې لیرې حصې ډیرا رنې او یخې وي چه د لمر حرارت او وړانگې هغه ته نه سوای رسیدلای.

په دغه نو ده سوې منطقه کې د گرز ذرات غیر لطیف د درنو موادو څخه جوړ سوي وه، مگر په نورو برخه کې هغه لطیف مواد چه داوریځې غازي برخه ئې جوړه کړې وه د گرز په ذرانو پورې یخې سول او دغه علت سو چه د خاورینو موادو په کمیت او کمیاوي ترکیب کې توپیر پیداشو او وروسته دغه توپیر د سیارانو د ۲ ډلو د جسمي او ترکیبي تفاوت سبب شو.

څو تراوسه داهم پوره معلومه نه ده چه آیا دغه لومړنی Prooplanetary ډېر ملك ډوله اوریځې دېهرنی برخی د حرارت درجه ډونه کښته وه چه حتی هاندروجن هم دګرز په ذراتو پوری بخی سره او په دغه ترتیب ددغو غټو سیاراتو اساسی جامده برخه وګرز بدل او که داسی ؤ چه په اومړی سر کی هغو سیاراتو چه د ناطقی اوتومنی حیث ئې دراودی څو دځپل غټ والی په نسبت ئې د ځان د تکامل په لړکی تو له غازی هایدروجنو نه دجامدو موادوسره یوځای ونغاړل او ځانته ئې کش کړه.

دغه رنګه دلاندنی ګروپ یا (هغه دله سیارات چه لمرته نژدې دي) خصوصاً دمځکې د کمیاوی ترکیب دقضیې په متعلق ځنی دتوجه ور مسائل پیدا کیږی. مثلاً داسی اجسام لکه مځکه او سپوږمی چه ددن لمر څخه په یوه فاصله واقع دی باید یو ډول ترکیب ولری مګر دمځکې کثافت ۵×۵ واره نسبت واو یو نه دی حال دا چه د سپوږمی کثافت ۳.۳ دی.

جیوفزیکی اطلاعات، چه د زلزلی دامواجو انتشار مطالعه کوی، په مځکه کی د یوه کثیف منځ یا Cone موجودیت ښکاره کوی، د یو وخت نه مخه داسی خیال کیدی چه دمځکی منځ یا Coye د نیکل او اوسپنی څخه مرکب شوی دی، که دا دغسی وی نو سپوږمی چه ترمځکی لږوړه ده باید لږ او سپنی ولری داد Hurey نظریه وه چه دغه سری ده یو وخت دپاره ددغو نقا وتو په نسبت کامه تلاش مصروف دی.

مګر ۳۰—۴۰ کاله کیږی چه دمځکی د مغز یا CORE اصل په متعلق ځینی نوی نظریات پیداشوی دی.

په ۱۹۳۹ کی دشوروی اتحاد یوه جیالوجیست (د طبقات الارض پوهاند) ښکاره کړه چه: امکان لری چه د مځکی مغز داسی ډېر پرن موادو څخه جوړ شوی وی لکه دمځکی سطح یا پوسټ چه ځنی جوړ شوی دی مګر هغه مواد چه دمځکی مغزته رسیدلی دی دائما یو ډېر (جو) تر پنځو نیم ملیون فشار لاندی کثیف شوی دی. او دمځکی په منځ کی ئې قرار نیولی دی. د ۱۹۴۹ راهیسی عیناً دغی نظریه د انګلیسی طبیعی پوهاند RAMzy له خوا په کامیابی سره انکشاف موندلی دی او ډیر پیاوړی طرفداره پیدا کوی. ددغی نظریې څخه مطلب دادی چه (دهغه احتمالاتو سره سم چه دعالم دمبدا په باره کی شته) مځکه او سپوږمی یو ډول ترکیب لری مګر دا چه زموږ دسپوږمی مواد نه دی کثیف شوی حتی په مرکز کی هم نو ددی علت دسپوږمی د داخلی فشار کموالی دی.

## لمر ی خوا

څه موده مخکښې دا سترلیا د ملبورن په ښار کښې سور دوه باران واوریدی د ښار خلګ لږ ګری وروسته ملتفت شول چه دا څرنګه سور رنګه باران اوریږی، سپارچی لمر راوخوت د دی ښار شاو خوا د سور رنګه باران په اثر لکه په کلا و چترو ی داسی ایښی وروسته چه خلکو دغه کلان وازموېل ښکاره شول چه کوری ډیری میده میده او ذقیمت د برګ ئې په نظر ورغلی چه دادیا قوت زمروت او عقیق څخه عبارت دی تر اوسه داسی قیمتداره باران په هیڅ ځای کی د ځږیدنه دی اوریدلی.

# الکساندر سیرگیویچ پوښکین

1799 - 1837

(۱)


ښاغلی «پوښکین»

الکساندر سیرگیویچ پوښکین د روسیې ستر شاعر دنوسمې پېړۍ په لومړۍ نیمائي کې ژوند تیر کړی دی.

پوښکین وارد دوره د نوی روسی ادب او دخپل وخت د روسی ادبی ژبې اساس کښېښوو.

دا ستر شاعر ویوې خوارې اشرافی کورنۍ ته منسوب ؤ. ده په هغه ایسه کې زده کړه وکړه چه د (پیټربورګ) د اطرافو (د تزار په سیلۍ) کې واقع وه او اوس دغه ښار د پوښکین په نامه بلل کیږی. په دغه وخت کې دا لیسه د ټولو عرفانی مؤسساتو په منځ کې نامی وه او زیات پر دې معلمان ئی خورا مترقی کسان وه.

پوښکین په کوچنی والی کې لا د اشعارو په لیکنه شروع کړې وه او په لیسه کې نو ده استعداد و خپل انکشاف ته دوام ورکی. وختی لا ده د ځوانی په اشعارو کې ده د شخصیت آهنګو نه او ربدل کیدله. ده دخپل اصلی طبیعت سره مینه درلوده. ده له خپله اولسه سره مینه وه. ده د آزادی او د ژوند وخوانه مینه وه او د عقل په منځ کې ئی اطاعت خوښ ؤ.

پوښکین د روسی اولس په غزلو او نکلونو پوهیدی او مینه ئی ورسره درلوده او ده د تخلیقی هنر له تقوبی سره ئی مرسته هم وکړه. دا ولسی اثر هول او موضوع ئی په هنری تکمیل سره په خپل هغه لومړی ستر شعر کې ښکاره کړه چه (روسلان او لیودمیلا) نومیدی او ده ز ربات شهرت

باعث وګرزېدی . همدا رنګه ئې په خپلو نورو عجیبو شعری نکلو کی دا کار ترسره ورساوه .

د پوښکین شعری استعداد دده د دلچسپی پراخی حلقی د شاعر ( ژوکووسکی ) او لیکوال ( کرمزین ) او د روسی ادبیاتو د نورو نومیالی کسانو توجه ځان ته راجلب کړه .

په کال ۱۸۱۷ کی د لیسی تر ختمولو وروسته پوښکین د خارجی چارو په وزارت کی په کار بوخت سو په دغه وخت کی دی د شریفو انقلابی نمایندګانو سره صمیمی اشنای سو .

د اتوکراسی ظلم د کال ۱۸۱۲ تر جنګ وروسته دهقانی تحریك راوپاراوه او په روسیه کی ئې د پټو ټولنو جوړیده راوسته . دی ټولنو د اتوکراسی او بندګی په مقابل کی مجادله خپل هدف وټاکله .

هغه د مخ خلک چه د دغو ټولنو په رأس کی وه ډېره برخه ئې مامورین وه چه کلك آزادی غوښتونکی وه او هغه خلک هم پکښې وه چه د کال ۱۸۱۲ په جنګ کی ئې برخه اخیستې وه .

پوښکین د دی د مخنی خلکو مفکوره په خپلو هغو اشعارو کی څرګندوی چه د ( آزادی ) او ( کلی ) او نورو تر عنوان لاندی ئې کښلی دی او په هغو کی د غلامی حقوق غندی او د آزادی دپاره غوښتنه کوی

پوښکین د روسیی پر مخلاندی آینده پسی اندی عمیقه عقیده دراوده . دا عقیده دده په هغو اشعارو کی واوریده سوه چه له لیسی څخه د راتللو په اخیرنی کال کی ئې کښلی دی .

(۲)

د پوښکین انقلابی مزاج ولومړی ( تزار الکساندر ) ته ښه ور معلوم ؤ او ویل به ئې : « پوښکین باید وسایبریا ته فراره سی ... د روسیه په راپارونکو اشعارو ئې ډکه کړه چه ټول ځوانان هغه په یادوی او وائی ئې » پوازی د ( ژوکووسکی ) او ( کرمزین ) په همت د ده جزا سپکه سوه : پوښکین وسایبریا ته نه سو فراره بلکه په عوض کی د جنوبی سیمی د ( کیشنیو ) وښار ته تبعید سو .

د پوښکین انقلابی مزاج په فراری سره کمزوره نسو . ده په خپل هغه شعر کی چه دغه وخت ئې د ( خنجر ) تر عنوان لاندی کښلی دی د استبداد سره ئې د مجادلی د پاره بلنه پکښې ورکړیده .

انډیوالانو پوښکین له ( کیشنیو ) څخه ؤ ( اودیسی ) ته راوستی خو هلته ډېر عمر پاته نسو . ( تزار ) امر صادر کی چه پوښکین د پولیسو تر نظارت لاندی د ( میخائیلووسکی ) کلی ته ولیږل سی چه هغه د شاعر د مور پلار ملك ؤ . و ( اودیسی ) ته تر تلګ د مخه پوښکین پو شعر وکښی چه نوم ئې دا و : ( ومیندنه ) پدی شعر کی دده « بایرون » په نامه یادونه کړیده چه د دی انګلیسی شاعر مړینه دی اوریدلی ؤ .

د ( میخائیلووسکی ) په کلی کی پوښکین دوه کاله تیر کړه دلته ده هغه درام وپای ته ورساوه چه ( بوریس ګدونو ) نومیږی او څو کاله د مخه ئې

رامښلولی ؤ او دغه موضوع له روسي تاریخ څخه اخیستل شوې ده. په دغه مقدمه کې چه پر دغه ډرام ئې کښلې ده پوشکین وائي: «ما خپله تراجیدي زموږ د پلار «شکسپیر» په ډول شروع کړې ده»

د «میخائیلوسکي» په کلي کې یې هغه رومان باندې کار کولو ته دوام پسې ورکی چه ( ابو کیپتني اپکین ) نومیږي. ددې رومان په پیټو کې چه په څو کاله کې ئې ویاي نه ور ساوه، شاعر په هنري ډول سره د خپل وخت انعکاسات پکښې ځای کړي دي.

دغه اثر د روسیې نامي انتقادي اثر دی چه انقلابي دیموکرات «بیلینسکي» د روسیې د ژوند دائرت المعارف بللی دی او په ده کې د روسي جامعې ژوند له بزګرو څخه نیولی تر اسورو تو امنو پورې پکښې ایښوده کیږي.

د کال ۱۸۲۵ په دسمبر کې لومړی الکساندر تزار مړ شو. پر تخت ئې باید دده ورور لومړی «نیکولای» کښینستلی وای. درباري انقلابیانو د دسمبر پر څوارلسمه شورش جوړ کې چه د دسمبریانو په قیام سره یادیږي: دوی د روسیې دپاره اساسي قانون غوښتلی او مطالبه ئې کوله چه بند ګي ختمه شي.

د دسمبریانو شورش ناکامه شو. پنځه نفره شورشي لار-ښوونکي ووژل شوه او نور وسایبریا ته فراره شوه. پوشکین د دسمبریانو د انقلابي مفکوري سره د خوا خوږي په وجه دا واقعه په عمیق ډول سره کتله. ددې پیښې د وژل شوو او فراري کسانو په جمله کې اکثره ددهٔ انډیوالان وه.

تر شورش وروسته څو میاشتې تیرې شوې پوشکین ژر (وپیټربورګ) ته راوستل شو. تزار فیصله کړې وه له پوشکین څخه درباري شاعر جوړ کي نو ځکه وخت دپاره ورته اجازه وشوه چه په ماسکو کې ژوند وکړي.

په دې سبب چه دی له فراره کیدو څخه وروسته راغی نو په ماسکو کې په حرارت سره دده استقبال کیدی. تو له وتلي خلکو چه دی ئې پیژندی دده و شرافت ته ئې په درنه سترګه کتله. پوشکین د لومړی نیکولای هیله ور پر ځای نکړه او درباري شاعر ځنې جوړ نسو. دده دغه وخت اشعار پوره د تزار تر تو نکې وه او له فراري او وژل شوو دسمبریانو سره ئې عمیقه خواخوږي پکښې بیانوله.

په کال ۱۸۳۰ کې پوشکین کوژده وکړه او ژر و (پټربورګ) ته ولاړی.

د شاعر مناسبات له تزار سره بد تر کیدله او پوشکین ته درباریانو د نفرت په سترګه کتله.

ددوی د دسیسې په سبب چه په هغه کې په خپله تزار هم لاس درلودی د پوشکین سره ئې (دانتیس) نومی فرانسوي ځوان وجنګاوه چه دغه لوچک بري د روسي تزار خدمتونه د مامور په شکل اجرا کوله.

په کال ۱۸۳۷ کې د جنوری پر ۲۷ دا جګړه وشوه

(دانتیس) وار دوارهٔ پر پوښکین دزې وکړې نو پوښکین سخت ټپی سو او پهٔ اوره کی راچپه سو.

د پوښکین د سخت ټپي کېدو خبر ژر تر ژره په (پیتر بورګ) کې خپور سو. سره له هغه ظالمه بخته چه په هغهٔ کور کې چه پوښکین ژوندی کښېی کاره دښېی او دور ځی په زرو خلک ورته راتله چه د خپل محبوب شاعر د جوړ نیا حال و نیسی. ده وورځو په ترڅ کی پوښکین لهٔ ما بینهٔ ولاړی.

(۴)

له کال ۱۸۲۸ څخه تر کال ۱۸۳۷ پورې پوښکین د ډېر ښکلي آثار و کښلهٔ. دده په اشعارو (پولتاوه) او (برنجی سپور) کی د روسي هیواد مهم تاریخ پېښي بیان سوي او د لومړي (پیتر) د حکومت جوړونکو کار و بار په کښېی ننداره کېږي. د (دوبرو سکی) په ښکل کی د زمین دارانو د بند کی بربریت تصویر وی ار هغه مجادلهٔ څرګندوي چه انقلابیان ئې د خپلو بزګرانو د دفاع دپاره کوي. هغه د بزګرو جنګ چه له کال ۱۷۷۳ څخه تر کال ۱۷۸۵ پورې د (پوګچیووه) تر لاس شوی و ئې لاندې سوی ؤ پوښکین وکښېی او خپلو معاصرو ته ئې د مهمو تاریخي حوادثو په شان ور ښکاره کړي. بېورو سته کی پوښکین په هم دی موضوع کی (د کپتان لور) په نامه ښکل وکښېی چه د مرګ د کال د مخه ئې و بای ته ورساوه.

پوښکین د لفظ په قوی معنی سره ملی شاعر ؤ.

دده نوم په ټولو روسی خلګو کی مشهور دی. دده آثار د شوروی اتحاد تو له اولس او د نړی د نورو اولسونو په ژبه کی وتلی آثار دی.

پوښکین د ډېرو شاعرانو او لیکوالو په هنر کی اغیزه ښندلی ده. د روسی ادب پیاوړو نمایندګانو د پوښکین د هنري ښکل په اجراء کی د واقعیت تصویر هم کښلی او هم ویلی دی.

پوښکین و کمپوزرانو ته د موسیقی د عجیبو آثارو په تخلیق کی داسی الهامات کړی دی چه د نړی مشهورهٔ خلګ کار ځنی اخلی. مثلاً د نولسمی پیړی د «اوپرا» مشهورو کمپوزرانو (ګلینکی) له «روسلان او لیودمیلا» څخه، (چایکووسکی) له (اوګینی انیګین) او (پیکوه با دامه) څخه، «موسورګسکی» له (بوریس ګدونوو) څخه استفاده کړی دی. دا اوپراګانی د روسی تیاترو له سټیج څخه نه راتلی کېږی او و خارج ته لا هم ځی.

د پوښکین په اشعارو کی ډېر ښکلو نه ختلی دی.

د شوروی اتحاد په ډېرو ښارو کی د پوښکین یاد ګار په مسکو کی دی چه د ښار په منځ کی د پوښکین په چار راهی کی ولاړ دی.

یو له بله په اخلاص ور کړي لاس و نه — د انا توا نو سره و کړی کو مکو نهٔ
د نفاق د خیری پاك کړی صور تو نه — بهٔ یو والی سره و کړی ښه کارو نه
وا سطه چهٔ په د نیا کښی د خواری دهٔ
بیکاری ده ، بیکاری ده ، بیکاری ده

موږ کټلی توم نښان په اتفاق ؤ — موږ تېر کړی ښهٔ دو ران په اتفاق ؤ
بېر ولی مو جهان په اتفاق ؤ — همیشه موږ فا تحان په اتفاق ؤ
هغه ښه د کټی شی چهٔ پر آفاق دی
اتفاق دی ، اتفاق دی ؛ اتفاق دی

که مو دغهٔ رنگه حال وی باژوندون وی — د اسبا مو د امید لکه بیرون وی
یادی خدای (ج) نکړی نفاق وی با بیلتون وی — تو نیکه بهٔ مو د غمه جگر خون وی
زموږ وار تیر سوای زامنو ستاسی واردی
د خدای یاردی د خدای یاردی د خدای یاردی

د نیکه پر دې و پنا می زړه مفتون شو — عقل و حس می په ر شتیا ور ته مجنون شو
د (طالب) پر خپل حالت باندی زړه خون شو — تر دې حده چهٔ ر نگین ئې په مضمون شو
خدای (ج) دی را کاندی توفیق د کار چه کار کړو
د نیکهٔ پر نصیحت با ندی رفتار کړو

# غوره وینا وی

له درو شیو او ښځه خان ساتل ډېر گران کار دی

۱ - درازو توساتل.

۲ - ذناور و سهل.

۳ - اود بری خبری کول.

* * *

که غواړی چه تر مړینی وروسته د چا هیر نشی په خپل ژوند کښی داسی کار و کړی چه هغه د لیکلو ور وی او یا داسی اثر ولیکی چه هغه به ویلو وارزی .

* * *

رخهٔ او کینه دانسان قدر کموی او د خلکو په نظر کښی ئې سپکوی

* * *

د داسی کسانو له وستی ځخه ځانو نه ژغوری چه خپل توم او د ژوندانه چاری نه سی ساتلای .

ښاغلی «نجیب»

# دروسی او

## پښتوژبی دلغاتو نژدیوالی

په روسی ژبه کښی ځینی
لغات شته چه په پښتو کی کټ مټ
او یا د ځینو الفاظو په لږ تحریف
سره دیوه مفهوم له پاره افاده
کیږی دا نه و یل کیږی چه
له پښتو څخه وروسی ته تللی
دی او که له روسی څخه وپښتو
ته ور نقل شوی دی. خو په هر
حال زه بعضی له هغو څخه چه
په ادا او مفهوم کښی یو د بله
مطابقت سره لری دروسی او
سانسکریت له مقایسوی نومی
کتاب څخه دمثال په تو که
سره رانقلوم .

۱- دروسی ژبی دوانکیر
یا انکیر کلمه دنوموړی
کتاب مؤلف د فارسی ژبی له
اخګر او سانسکریت له انګارا
سره یوشانته مرادفه بللی ده
په پښتو کښی هم وښه انګیدلی
اورته انګار ویل کیږی .

۲- دوپ لفظ په روسی ژبه
کی دخالیګاه په مانا په پښتو
کښی ئې صرف اخیرنی حرف
په (ب) سره اړول شویدی د
نوری ادا او افادی صورت ئې کوم
توپیر نه لری .

۳- دروسی ژبی دمام د کلمی
اخیرنی حرف په سانسکریت
کښی صرف په نون فتحه او په
پښتو کښی ئې مخنوی او اخیرنی
حرف په (و) او (ر) سره تبدیل
شویدی .

۴- په روسی کښی ژوی
وحیوان ته وایی په پښتو کی
نور په ۲۳ صفحه کښی

ښاغلی عبدالغفار «بریالی»

## زړو

زړو په ناز دد لبرا نو — زړو په آه دسوخته ګانو
زړو په کبر د خوبا نو — زړو په درد د بیدلا نو
زړو په مینه درندا نو — زړو په زهد د شیخا نو
زړو په غشو دمژ ګانو — زړو په مرګ دفدا یانو
زړو په عطر د زلفا نو — زړو په قتل د چشما نو
زړو په چم د رقیبا نو — زړو په دم د مظلوما نو
زړو په نږوه د غازیا نو — زړو په خون د شهیدانو
زړو په درس دناصحا نو — زړو په کیف دشاعرا نو
زړو په ننګ د افغانا نو — زړو په رنګ دزرکیانو
زړو په ګټه د نیکا نو — زړو په قول د وافیا نو
زړو په مینه د یا را نو — زړو دزوب په کا کرانو
په خندا د وصالی زړو — په ژړا د (بریالی) زړو
په دا وارو می قسم ی خپله یاره
که زرمر که متاله مینی سم بیزاره

# د کندهار

## چهل زینه

د کندهار د لیدلو وړ ځایو څخه یو چهل زینه ده چه د کندهار د ښار د لوېدیځ (غربي) لوري د جنوبي برخې په دری کیلو متری کې واقع ده.

دا چهل زینه د پښتو د لمړی درجې حکومت په سیمه کښې د (کوچنی غره) په اوږد مانۍ کښې سنګتراشي شوې، د تعمیر پردننه او د باندې برخو باندې ئې د (بابر) کورنۍ د فتوحاتو تاریخچه لیکل او کیندل شوې ده د کندهار د چهل زینې د برینه مانۍ.

پدې د برینه مانۍ کښې چه وښار ته نژدی او د مشهور غره (سربوزی) په مخ کښې واقع ده لیدو نکی په ډېر حیرت کښې اچوی چه قدرت څرنګه یو داسې مناسبه ډېره موندل چه له کښتې څخه تر پورته پوری (۴۲) زینې پورته شوی، او دغه په اوږده برخه کښې یوه مناسبه او مسطح خونه جوړه شوې ده.

ددې ځای د بناء کوونکی مذکوره هم د ډېری ستاینې وړ ده. چه څرنګه ئې په یو داسې ډېر بڼ ځای کښې د ځای جوړولو فکر کړی او بیا ئې دغه د جوړولو امر کړېدی. همداسې هغه کاسبان، کار کوونکی او حکاکان چه په ښه صورت ددې کار تر عهده وتلی دی د شاباسې وړ دی.

ددې بناباني بابر ظهیر الدین دی، چه د هجری ۸۸۸ کال د محرمې په میاشت کښې پیداشوی، او د مړګ کال ئې ۹۳۷ بادشوی دی، دا ځای د ده د زوی بهادر محمد کامران په زیار په ۹۳۲ کال کښې سر ته رسیدلی دی.

دا مانۍ چه د یوی سختې ډبرې څخه له کښتې څخه پورته شوې ده، ډېره مشهوره ده، ۳۲۰ کاله د مغه دامانۍ سلطنت په دوره کښې ددې زینې و دوار و خواؤ ته سیدې کتاری و دورولی شوې، چه و چهل زینې ته ختل او را کښته کیدل ئې خورا آسانه کړه.

## دروسی او .....

کټ مټ دغه کلمه د حیوان دپاره معموله ده.

۵- دروسی ژبې زرونة او دپښتو ژبې زونه په ادا او مفهوم کښې غیر له یوی (ر) د اضافه لقب څخه نور فرق نه اری.

۶- زور په روسی او پښتو ژبه کښې د قوی او تندرستة معنی ښندی.

۷- دروسي ژبې دزلفیدلو کلمة دپښتو د ځمیدلو له کلمی سره بیله لږ تغیره څخه په ادا او مفهوم کښې یوشی ده.

۸- (دهنی) او هندوانۍ د کلمې په مفهوم او ادا کښې بیله دال له دمغه نوب او (ا) ؤ(و) له اضافه نوب کوم بل لفظی او معنوی تغیر نشته.

۹- دروسی دخوت کلمه د پښتو د خوت له کلمی سره په ادا او مفهوم کښې یوشانته ده.

۱۰- نیز نك دروسی او نازك دپښتو تر یوی اندازی پوری په ادا او مفهوم کی قرابت سره اری.

د محمد احسان ،، کارگر ،، ژباړه

# له خپلې لور سره

## د مور راز او نیاز



او زما بچیه! بیده شا چه شوخ ورور دې له ختیځ څخه سرود زغري.

مور دې پخپل غېږ کې آرامه نیسي او د بلوط تر درختې لاندې داستانو نه درته وائي.

بیده شه!!

چه خوږ خوب وکړې.

اور کیه! شپه تر نیماڼې تېره شوې ده سایه داره بېرته وزرونه خلاصوي؛ اورمړ شوېدی، د شپې دیب د رود بر غاړه ولاړ دی.

زما ګرانې لوریه! په ژوند کې وفاداره او سه چه ته بر خپل مېن ګرانه او سې، ځکه اوس لا کوچنۍ ئې او دا پند له ما نه واوره!

—:(۰۰۰):—

اوه! زما لور کیه بیده شه چه شوخ ورور دې له ختیځ څخه سرود زغري.

هر وخت چه تا حس کړه ځوانان دې دوستداري؛ د هغو په قول اعتماد مه کوه ځکه هغه ډېر دروغجن او حیله ګر وي.

زه هم بو خوشاله ګل وم؛ بوه ورځ د بهار وختې لکه تازه ګل په بڼ کښې د سرو ګلونو سره په عاشقانه صحبت سره مشغوله وم، جفا کاره باغوان چاړه پر غاړه را کښېښوده او زه ئې له بوټي جلا کړم، او دېر فریبکاره ځوان په لاس ئې وسپارلم، د زمانې سیر او د فرشته ګانو وزرو حرکت ګاوه او زه ورځ په ورځ سره وېلېدم، کوڅې مې د سنبل په عطرو معطرې وې، او اوس په پریشانۍ آشفته دی.

زما لورکیه لومړې معشوق وازمویه او بیا د عشق د پېشوا په مقابل کښې سرټیټ کړه

چه زړه دې پاك او بې آلایشه شي. ګله چه د نجلۍ او هلك په منځ کښې حقیقي عشق لار پیدا کړي هلته بیا د حوا د نو سپل بر هغو حمله نسي کولای.

زما لور کیه بیده شه!

د پسرلي باد له پنجرو څخه د عشق بوي راوړي او د سهار ګاه نسیم د خو شبختۍ نغمې زغوي.

د ژوندون کاروان مخ ته ځي او نوي حادثې د پېښو په مخ کښې درته اچوي.

زما لور کیه بیده شه!!

د رهبانانو څراغ و خاموش کېدو ته نژدې دی، سهارنۍ سپېدې د طلوع په آستانه کې دی.

د چوپانانو د شپېلۍ آوازونه وغوږو ته رسیږي.

شوخ ورور دی له ختیځ څخه سرود زغوي.

# د پښتنو ځینې دودونه

ښاغلی نور محمد کرزی

فولکلور :

د کندهار په جنوب او لمر لویدیځ جنوب کې دوې لنۍ دي چه یوه چار ده او بله پنجوایې نومیږي استیدونکي ئې ټول بارکزي دي دا وګړي په ودو کې ځینې داسې دودونه لري چه هغه تر اوسه پورې د ټول افغانستان او نورو ځایو په ودو کې نه دي لیدل شوي او نه اوریدل شویدي .

دوی په نورو ټولو دودو کې د کندهار د ښار او خپل چپ- چاپیره ښځو نو پیرنه لري یوازې ځینې شیان چه په نورو ارة نه لري لاندې ښودل کیږي :-

۱- هر سړی چه د دوې ښځه نجلۍ وغواړي وروسته تر یوې ټاکلې مودې دسمال اچوي چه دې دود ته پښه ارتیدل یا پښه خلاصیدل وائي وروسته تردې نو زوم کله کله د خپل خسر کره ورځي . خو یوازې د دسمال اچولو په لمړۍ شپه چه د زوم خپلوان وروسته تر ډوډۍ خوړلو وخپلو کورو ته رخصت شي زوم د خسر کره پاته شي ماخستن د خوب تر وخت وړاندې خواښې او د نجلۍ نورې خپلوانې راځي لمړی زوم کوری څه مجلس ورسره کوي نجلۍ اودې سره پریږدي او بخپله ځنې راوزي د باندې ورته پټې شي دده خبرې چه دخپل میرمنې سره ئې کوي د دوې معرفي چه لمړی وار یوازې په ایدلو سره کیږي هغه باید په یوه چم د چمو واوري تر دې چه ځینې ښځې د زوم او ناوې د ملاقات په خونه کې د وړاندې د زوم تر رانګ په برملك یاداوړو په کنډو کې ورته پټیږي ، دوی هغه کوي چه زوم پوه نه یوهیږي د میړه او مابنې لمړنی خوږ مجلس په خپلو غوږو واوري او سهار پیله دې ښځه چه د نجلۍ ښځه یو ښتنه وکړي په خپله هم خبرې وي د خپل ساعت تیرې اپاره سهار ناوې هم مجبوره کوي چه د دې او میړه په منځ د مړ کې خبرې په ښکاره د ول سره په نورو ښځو هم واوري که چیرې هغه ځینې خبرې پټې کړي او یا شرمیده هغه باید چه هرومرو دې پټې شوې ښځې له خوا ښکاره کړه شي . زوم هم باید دې دودسره لمړۍ لا یوهول شوی وي غواړي چه څوك ورته پټ شي او خبرې ئې وانه وري ، نو وړاندې تر ملاقات د پټو شوو ښځو پلټنه کوي هغه یاسې پیانو پایو دېزړه خپلې خبرې کوي .

د چغل بازی په دوهمه شپه بیا د ناوې او زوم تر مجلس وروسته دخوب تر وخت وړاندې د ناوې د پرې ورتیرې خپلوانې او د

د نجلۍ مور د زوم سره په هغه ناکلي کوزده کې بوخته ای کېږي نجلۍ هم د هغو سره بوخته وي د ناوې لاس باید زوم په بوه لاس سره داسې ټینګ ونیولای شي چه ناوې ئې ځینې خلاص نکړي هر څومره چه زوم په بدني توان کې بر خپله ناوې باندې غښتلی وي هغومره ددې ښځو په ستر ګو کې درونداو د وقار څښتن ګڼل کېږي وروسته تر دې ازموینې نو بل کوم د مقابلو ور شی نه پاته کېږي واده او خوښي ئې د نورو ښارو او دودو په شان وي . دواده په هغه روځ چه ناوې د پلار له کوره راسپره کړي وا رخصت واخلي د کلي ټول نوي ځلمیان اس کلان هلکان تر دې چه په زیړه خلک هم اشتراک پکښې کوي ټول ورابانې په کانوولی دا کانې بخوا بر هغه لار باندې چه ناوې ور کېږي راغونډ شوي وي د لوتو څخه هم کار اخلي هیڅ یوه وربانی باندې زړه سوی نلري سراو پښې ئې نه ګوري بوالحې ناوې او هغه وکړي چه د هغې سره نژدې ځي ددې وېشتلو څخه ژغورل کېږي نور تو له ورابنې تر ناوې وراندې وي که وروسته خا مخا د ټیږو واري ور باندې کېږي .

دا دود د خورا پخوانۍ زمانې څخه په دوی کې شته هر کله چه د دوی څخه پوښتنه وکړي چه تاسې ولې ورابانې په ټیږو ولی بوهان او نا پوهان ئې دا بیت وائي :

د پښتو خو له د بل وطن دی
څوک چه پردی ملکونه خوری سرور کوینه

دغه لاندېني دلیلونه هم د خپل دود په شاو خوا کې بیانوي .

۱- دغه نجلۍ ز موږ د کلي خو رانه ده ددې د باره چه څوک په سپکه ستر ګه ور ته و نه ګوري موږ ئې په ډبرو او ځکه هر شي چه ورباولاس ته راشي هغه بیقدره وي په زیارمو ندلی د ځانه نه لیري کېږي .

۲- دغې نجلۍ ددې کلي په ژوندون کې خوراډېره تجربه در لوده دلی روزل شوې . باید چاد همدې کلي په ځلمیانو کې بوه غوښتي وای نه دا چه د روزنې خوارۍ ئې بر موږ باندې تېرېږي او د ژوندون اړې به د نورو د سره کوي .

۳- هغه بیت چه بخوا اوستل شو هم ځان دلیل بولي چه بوه پیغله ښځه دیوه با ناموسه ننګیالي ټبره څخه بیول د سر په ښند نه اده لري هر څوک داسې کار نشي کولای .

د بر ځلي ایدل شوی دی چه د زوم ټبر داوړی کورنۍ څخه وی وراندې تر واده د ناوې د کلي مشران و کوري با ټینګه سره خواهش ځنې وکړي چه موږ به په ډبرو نه ولې هغوی هم د دوی خبره منلې وی بیاهم کوم وخت چه واده شي ناوې سپره شوه د وي لاس نه دی دریدلی خامخا ئې درابنو بر شاو نورو غړو باندې کانې مښتی دی .

او که چېری د دوی کلي ته د بل کلي څخه ناوې راوده کېږي . هغه نه ولې او په خپل کلي کې چه دیوه کوره بل کورته ناوې وړي هغه هم نه ولي . ځکه نو امکان لري چه دا پوره تښې دري قانونه په رشتیا وي او یا داچه ځینو وګړو د ځانه ویلي دی او نورو ئې هم تکرار کوي .

# والاحضرت شهزاده ګی مریم د خپل میړه

## ښاغلی سردار محمد عزیز « نعیم » سره د اوړو تحصیلاتو په غرض واروپا ته رهی سول

کابل: ـ حمل په ۱٤ نېټه والاحضرت شهزاده ګی مریم د ملالی د لیسی فارغ التحصیله د خپل میړه سردار محمد عزیز « نعیم » د حقوقو او سیاسی پوهنځی فارغ التحصیل سره د شوروی اتحاد د لاری د اوړو تحصیلاتو په غرض واروپا ته رهی سول. د دوی د مخی ښی دپاره والاحضرت شهزاده ګان او د سلطنتی جلیلی کورنی غړی او د عظمی صدارت کفیل ښاغلی علی محمد د کابینی غړی و هوائی ډګر ته ورغلی وو.

والاحضرت شهزاده ګی مریمی د ۱۳۳۹ کال د قوس په ۳۰ ورځ د خارجه چارو د وزیر د زوی ښاغلی محمد عزیز « نعیم » سره د همایونی معظم اعلیحضرت په حضور کښی ازدواج کړیدی. باختر

# ښاغلی سردار محمد داؤد صدر اعظم

## تر علاج وروسته په خیر کابل ته راغی

کابل: ښاغلی سردار محمد داؤد صدراعظم او محترمه میرمن ئې د حمل په ۱۹ ماښام پر ۶ بجو او ۱۰ دقیقو په الیوشن ۱۸ مخصوصه الوتکه کې د کابل هوائی ډګر ته راورسېدل دالوتکو پر ډګر والاحضرت شهزاده محمد نادر؛ والاحضرت مارشال شاولی خان غازی د کابل فاتح، د سلطنتی اولی کورنی ځینو غړو، دملی شوری رئیس د صدارت عظمی لمړی معاون ښاغلی علی محمد، د خارجه چارو وزیر د صدارت عظمی دوهم معاون ښاغلی سردار محمد نعیم، د سلطنتی دربار وزیر د کابینی غړو، لوی درستیز، د کابل والی، د کابل ښاروال؛ لوړو لوړو عسکری او ملکی مامورینو، د کور د پلوماتیك هیئت او په کابل کی اوسیدونکی پښتونستانیانو د ښاغلی صدراعظم ته هر کلی وویل. ښاغلی صدر اعظم د الوتکی څخه د راکښته کیدلو په وخت کی د والاحضرت شهزاده محمد نادر، والاحضرت مارشال شاه ولی خان غازی د کابل فاتح د صدارت عظمی د معاونانو، د ملی شورا د رئیس او لوی درستیز سره روغبړ وکړ او د احترام ګارد ئې وکوت او وروسته د هر کلی کوونکی د صفوفو خواته ئې تشریف یووړ او د ټولو سره ئې روغبړ او پوښتنه وکړه. ښاغلی سردار محمد داؤد صدراعظم د جدی د میاشتی په ۱۳ نېټه د علاج د پاره وروم

(نور په ۲۸ صفحه کښی)

ته تللی او د ملا په شمزی کی ئې په کامیابی سره ترجراحی وروسته د شوروی اتحاد صدراعظم ښاغلی نیکیتا خروشچف په خصوصی بلنه و ماسکو ته تللی او هلته ئې د خپل څلور ورځنی استوګنی په دوران کښی د شوروی صدراعظم ښاغلی نیکیتا خروشچف او نورو لوړو مامورینو سره د دواړو مملکتو پر بین المللی علایقو د ملا تړلو او د پښتونستان د مسئلی په باره کی خبری وکړلی.

داونوکوا هوائی ډګر ته ښاغلی خروشچف د وزیرانو د شوری د رئیس لمړی معاون ښاغلی الکسی کوزیجن، د شوروی اتحاد د ملتو د شوری د خارجی چارو د کمسیون رئیس ښاغلی نورالدین محی الدین اوف: د خارجه چارو وزیر ښاغلی ګرومیکو او نور لوړ مامورین د ښاغلی صدر اعظم سردار محمد داؤد د مخی ښې د پاره راغلی ؤ.

باختر آژانس وائی چه د ښاغلی صدراعظم صحت بیخی ښه او روغ دی. باختر

# د شوروی اتحاد

## عالمانو ترتولو لمړی فضائی بیړی د انسان سره د واستولو او په بریالیتوب سره ئې روغ رمټه را کښته کړه

ماسکو: د نړی اولنی فضائی بیړی چه «وستوک» نومیږی او انسان پکښی ؤ د شوروی اتحاد له خوا څخه د حمل په ۲۳ نیټه د مځکی په چار بیره

(نور په ۲۹ صفحه کښی)

# د پښتونستان

## ملی زعیم خان عبدالغفار خان بیا بندی شو

د حمل په ۲۳ نیټه د پښتونستان ملی زعیم ښاغلی خان عبدالغفار خان د پاکستان د حکومت د چارو دواکمنو له خوا پو ځل بیا د شپیږو میاشتو د پاره بندی کړه شو د پاکستان د استعماری حکومت د دغه ظالمانه اقدام خبر پخپله د کراچی راډیو د حمل په ۲۳ سهار خپور کړ او زیاته ئې کړه چه دی د امنیت د قانون په اساس چه په ۱۹۶۰ عیسوی کال کښی نافذ شویدی د خلکو د طبقو ترمنځ د کرکی د پیدا کولو او د مملکت پر ضد د عملیاتو په ګناه بندی شویدی.

# ښاغلی سردار

## محمد داؤد صدر اعظم د شوروی اتحاد وصدر اعظم ته و خارجی فضا ته د انسان د لیږلو په سبب د مبارکی تلګرام مخابره کړ

کابل: د حکومتی باوری منابعو د اطلاع سره سم د افغانستان صدر اعظم ښاغلی سردار محمد داؤد د دغه خبر تر اوریدو وروسته د شوروی اتحاد د وزیرانو د شوری د رئیس ښاغلی نیکیتا خروشچف په نامه د مبارکی تلګرام لیږلی او په هغه کی ئې د شوروی اتحاد د پرمختګ او روښانه کامیابی ستایلی ده.

د ګرځېدلو د پاره وتوغول شوه او د دغې ورځې په ۱۲ بجو او ۲۵ دقيقو په هغه ځای چه بخوا ورته ټاکل شوی ؤ روغ رمټ راکښته شوله . د دغې بېړۍ چلوونکی د شوروي اتحاد د خلکو ښځه میجر یوري الکسیوېچ ګاګارين پيلوټ ؤ ، د دغې بېړۍ د هغه له سرې سره چه پکښې ؤ ۴۷۵۲ کيلو ګرام درونده والی درلود د دغې بېړۍ داوزن د مرسلې دوروستي مرحلې د وزن څخه په بر نه ؤ . المځکې څخه د دغې بېړۍ د بر لېږوالی ۱۷۵ کيلو متر او لېرې والی ئې ۳۰۲ کيلو متر او د خط استوا سره ئې د ميلان خوا په ۶۵ درجه او ٤ دقيقو کې ؤ په دغه الوتنه کې د دغې بېړۍ او مځکې تر منځ دوه طرفه راډيوئي ارتباط قائم ؤ . وستوك څخه د لنډی څپې فريکوينسي ۱۹-۹۱ او ۲۰،۰۰۶ ميګرهرسټ ؤ د ګاګارين وضع په دغه بېړۍ کې د ټلويزيون د يو سيستم په واسطه تر مراقبت لاندې وه ګاګارين په فضائي کښتۍ وستوك کې پر مځکې به ګرځېدنه وکړه کومې دستګاه وې چه په دغه بېړۍ کې د انسان د عادي ژوند د تأمينولو د پاره ايښودلې شوې وې په عادي ډول سره ئې کار کاوه .

وستوك فضائي بېړۍ پر ۱۰ بجو او ۲۵ دقيقو پر مځکې د شاؤخوا او چاپېر ګرځېدو څخه وروسته پر ۱۰ بجو او ۲۵ دقيقو په راکښته کېدو شروع وکړه او د ماسکو پر وخت د غرمې پر ۱۰ بجو او ۵۵ دقيقو چه د کابل په وخت ۱۲ بجې او ۲۵ دقيقې کېږي د پېش بيني شوي کتنو او د شوروي اتحاد د فضائي بېړۍ د الوتنې بېړۍ څخه وروسته پر هغه ځای کښته شوه چه ورته ټاکل شوی وو میجر ګاګارين چه د بېړۍ څخه کښته شو او ئې ويل :

لطفاً ګوند ، حکومت او ښاغلي نيکيتا خروشچف ته ووايا ست چه زما د کښته کېدو عمليات سرته ورسېدل . زه روغ يم زما کوم ځای ګروزل شوی او بازخمي شوی نه دی

خارجي فضا ته د ګاګارين تګ د بشر په واسطه د فضا د تسخير د پاره د روښانه آینده د پاره لار پرانیزي ، باخبر

مترجم محمد علم «بخرکی»

# تاریخ

## څه شی دی ؟

داسوال څرنګه ساده او واضح دی ، مګر ځوابونه ئې د ډېرو پېړیو راهیسې د اختلاف سبب ګرځېدلی دی ، کله چېرې د تاریخ زده کوونکي تاریخ ته د ساینس درجه ورکوي ، نو طبیعي فیلسوفان سمدستي د اعتراضاتو پیل پر کوي . او وائي چه تاریخ د خرافاتو بیان دی . او هیڅکله نه پرېږدي چه تاریخ د ساینس درجه حاصله کړي ، د ساینس علما فکر کوي چه تاریخ یو ناپاك او ګډ علم دی چه د علم په مکتب کې په هیڅ صورت نشوای داخلېدلی د بلې خوا علما دعوه لري چه تاریخ د نورو طبیعي علومو په شان یو طبیعي علم دی ، مګر دادعوه کومه قطعي فیصله نده

(نور په ۳۰ صفحه کښې)

تر هغه وخته پورې چه موږ د ساینس او تاریخ پوره او مکمل تعریف ونکړو دا سوال بې معنی دی، چه آیا تاریخ په ساینس کښې شامل دی که نه ؟

د ساینس تعریف خلک داسې کوي، چه ساینس د هغه پوشانه حقائقو مجموعه ده چه د هغه څخه یو عام اصول یا قانون ولاس ته راځي داسې قانون چه موږ دې قابل کړي چه په یقین سره ووېلای سو، چه په مخصوص حالاتو کښې پوشانه حوادث یو قسم اثر پیدا کوي .

د ساینس ددې تعریف څخه لاړ دا کښتن وروسته سوال کیدای سی، چه آیا تاریخ څه شی دی ؟ آیا تاریخ ساینس دی؟ که چیرې موږ د تاریخ ته کلي او خاص تعریف ونکړو او ددې خبرې پر ثابتیدو زور واچوو چه تاریخ ساینس یا ارټ ثابت کړو ! نو به ډېر و مشکلاتو سره مخامخ سو ، چه د هغه څخه وتل څه آسانه کار نه دی ، او که چیرې فرضاً د مشکلاتو څخه ووزو هم د تاریخ په باره کښې یو علمي مفکوره ولاس ته نه راځي نو دوباره ددې چه دا بحث آسانه او قابل د پوهېدو سی ؛ لازمه ده ، چه د تاریخ تر تعریف وروسته هغه تعریف د لاړ دا کښتن پر توضیح تطبیق کړو ، نتیجه به پخپله واضح او ښکاره سی .

که موږ تاریخ د حادثاتو جریان و بولو کویا موږ تاریخ د تاریخ جوړونکو د ژوند سوانح و بللهٔ او دا ښکاره خبره ده چه د پوهاڅي داسکندر ، سیزار، چنګیز، هلاکو حالات او یاددوې د کار نامو اغېزې موږ ساینس نسوای بللای . او که چیرې موږ و هغه کتابو ته ساینس ووایو ، کوم چه معاصرو خلکو لیکلي دي نو آیا دا ویلای سو چه تاریخ یو ساینس دی ؟

هیڅکله موږ نه سوای ورته ویلای، ځکه چه سرګذشت او وقایع نګاری آرټ دی، او ددې ارټ نوم تاریخ ندی بلکه د تاریخ لیکنه ده ؛ ددې څخه دا ثابتیږي چه که موږ تاریخ د زماني رفتار و بولو او یا دا و منو چه تاریخ وقایع نګاري ده، بیا هم موږ تاریخ ته ساینس نه سوای ویلای، تاریخ په اصل کې یو داسې عمل دی چه د نکته چیني په واسطه سړی ته علم ور کوي . په دې تعریف سره ویلای سو چه تاریخ ساینس دی د نکته چیني څخه مراد د حال تشریح ده تاریخ د طبیعي علومو څخه یو بیل او جلا علم دی دا علم د تجربو او مشاهدو علم ندی بلکه د تاریخ علم د نکته چینو چه ددې نکته چینو څخه یو عام اصول یا قانون ولاس ته راوړو او ددې قانون په واسطه موږ ددې قابل کیږو چه په یقین سره وویلای سو چه په مخصوص حالاتو کې پوشانه حوادث په پوره ډول اثر پیدا کوي .

د مصر د فرعونانو او د فرانس د بوربونیانو په منځ کښې په زرو کلونه حائل دی ، مګر ددواړو ملکو د ملاکیه (زمینداری) نظامونه یو شانتې نتیجې پیدا کړې .

﴿ نور بیا ﴾



د پښتونستان ستر زعیم ښاغلی خان عبدالغفار خان
چه د پاکستان د استعماري حکومت له خوا بیا په شپږو
میاشتو بند محکوم شوی دی
نو ځکه د افغانستان او پښتونستان د ولسونو احساسات
ئې جریحه داره کړیدی .

KANDAHAR

MONTHLY MAGAZINE

OFFICE:-

PRESS DEPARTMENT

KANDAHAR, AFGHANISTAN

EDITOR M.A-KARZI

APRIL 21, 1961

GOVERNMENTAL PRESS